# د ورمو نخښې

د جهاد ادبي کتابښود

حبیب الله رفیع

۱۳۶۹

# د وږمو نخښې

## (د جهاد ادبي کتابتون)

لومړی ټوک



حبیب الله رفیع




دکتاب نوم: د وېنمو نخښنې
(د جهاد ادبي کتابتون).

لیکوال: حبیب الله رفیع .

خپرونکی: دافغانستان اوسنی ادبیات د سیمینار
سکرتریت.

خطاط: نورالدین "هنریار" .

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

[ ۱ ]

د تاریخ په واټ کښې د انسان د پښو پلونه هغه وخت پاتې شول چې لیک یې اختراع کړ او همدا د لیک اختراع د بشر د تاریخي دورې ابتدا، هم شوه او له دې ورځې نه د انسان تاریخ پیل شو. ولیکل شو، له یوه نسل نه بل نسل ته ولېږدول شو او د انسانانو د تجربو د انتقال له پاره د یوې ښه وسیله رامنځ ته شوه او ډېر ژر ورسره په ډبرو، د خاورو په پوستکو، پاپیروس او بیا کاغذ د پیغامونو، رازونو، پندونو، رپوټونو او تجربو لیکل او خوندي کول هم رامنځ ته شول.

هو! د خط اختراع د بشر په تاریخ کښې یو لوی انقلاب

دخط له اختراع نه لږ وروسته کتاب هم سترګي
وغړولې او دخط په غبرګېدو د رانغښتل شوو مفاهیمو د
ساتلو، خوندي کولو او لېږدولو یوه ښه وسیله وګرځېد.
ورو- ورو کتابونه زیات شول، خواره شول، وسیع شول،
له راز- راز موضوعاتو څخه ډک شول او د ژوند راز- راز ساحې
یې وڅېړلې او وڅیړلې.
په همدې بهیر کېښې وخت په وخت علوموه، فنونو او
د هغو څانګو او ښاخونو وده وکړه او انسانانو تخصصي زده کړو
او پوهنو ته لاس وغځاوه، د دې پوهنو د آسانۍ- او د هغه
د لیوالانو د معلوماتو او خبرېدنې له پاره کتابپوهنه رامنځ
ته شوه، کتابښودونه او د کتابو فهرستونه جوړول پیل
شول او همداوه چې د کتابپوهنې په کوړ کښې د ببلیوګرافۍ
یا کتابښودنې فن ته توجه وشوه، وده یې وکړه او اوس
په نړۍ- کښې دا فن تر ټولو فنونو غوره اندی دی او د همدې
فن په رڼا کښې نور علوم او فنون ترتیب، نظم او رونق موږي

افغانستان د آسیا او حتی ختیځ د کتاب لیکنې یو مهم مرکز دی، د لته له زړو هاؤ کلونو را هیسې دینې، اجتماعي، فلسفي طبي او نورو په زرهاؤ ټوکه کتابونه لیکل شوي او ترسل کلونو پایت عمر کېږي یا چې په دې هېواد کښې په زرګونو کتابونه خپاره شوي . و یشل شوي او د علاقمندانو لاسونو ته رسېدلي دي .

د اجتماعي ګډوډیو، د پردو دیرغلونو، د کورنیو جګړو او نورو ستونځو له امله دا لیکل شوي او دا خپاره شوي کتابونه همداسې خواره واره، په تحویلخانو کښې ورک، په ګوښو کښې او له نظر نه لرې پراته وو، چا ته یې سمه پته نه وه او چا نشوای کولای چې خصوصاً د افغانستان د چاپي کتابونو او آثارو یانګه ځان ته معلومه کړي .

په تېره نیمه پېړۍ کښې د هېواد پوهانو او عالمانو دا ضرورت درک کړ او د کتاب لیکنې، کتاب چاپونې او کتاب ساتنې ترڅنګ یې د کتابشناسي ـ کتاب پېژندنې او سپلیو ګا ړ هم

لاړ دوام لري. او دا کتابښود ونه لا ځېر بېږي.

[ ۳ ]

ماچې کله لیکوالي پیل کړه زما ذوق ساحه د هېواد د لیکوالو او د دوی د آثارو او خصوصاً د پښتو له ادبي خزانو او معنوي شتمنیو سره وه نو له همدې امله کتابښود هم زما د کار د پیل له موضوعاتو څخه و، په دې لړ کښې مې لومړنۍ مقاله د پښتو پر یوه دیني سپېڅلي کتاب «ذخیرة القراء» په ۱۳۴۲ کال کښې وکښله چې آن یا نا بحلي خپره کړه، او «د پښتو څوانۍ تذکرې» په دې سلسله کښې زما لومړنۍ تالیف و چې تاریخ ټولنې په ۱۳۵۰ کال نشر کړ، په ۱۳۵۱ کال کښې مې د تاریخ ټولنې له خوا د خپرو شوو کتابونو کتابښود «د تاریخ ټولني کتابونه» په نوم وکیښ، په ۱۳۵٤ کال کښې مې د پښتو څېړنو د لومړني سیمینار له پاره د «پښتو پانګه» په نوم د پښتو د پنځوسو ټوکو چاپي کتابونو معرفي ولیکله چې د هغې وخت د پښتو ټولنې په همدې مناسبت

توګ چې تر یو نیم زر زیات پښتو چاپي کتابونه مې یکښې فهرست کړي وو، لیک او د بیهقي کتاب خپرولو موسسې خپور کړ او ور سره مې د پښتو موقوتو خپرونو پېژندګلوي د «پښتو خپرونې» په نوم په کتابي بڼه ولیکله چې په همدې کال او همدې مناسبت د پښتو د پراختیا او پرمختیا د ریاست له خوا په کتابي بڼه خپره شوه، په انفرادي دول مې هم د هېواد په مجلو او ورځپاڼو کښې په لسها وو کتابونه معرفي کړل او هم مې په ۱۳۵۳ کال کښې د بایزید روښان د سیمینار له پاره د روښاني لیکنې په ساله ولیکله چې په آریانا مجله سربېره په «روښان یاد» کښې هم خپره شوه او هم دلته په پېښور کښې دارزاني خویشکي دا دبي ټولنې له خوا په کتابي بڼه چاپ شوه، دخواجه عبدالله انصاري کتابښود او ځیني نور کتابښودونه هم د دې لړ کړي دي.

... او په دې توګه کتاب پېژندنه زما د کار یوه

کله چې د مهاجرت په کاروان کښې پښتنو ته ئې علم دلته کار ترهغې ځای نه هم کړی وو، په حزبونو پوري دتړلو او آزادو فرهنګي مرکزونو او دفاترو اکثره چارې دغېر فني اشخاصو له خوا ترسره کېدې، په کتاب، رساله او حتی جریده به د چاپ کال نه لیکل کېده او تر چاپ وروسته به نه ویشل کېدل او چا ته به نه رسېدل، اکثرو به داعوم اسناد (؟) بلل او چا ته به ئې نه ورکول، په دې باب زما یوه خاطره ده یوه حزب ته مې دهغه د چاپي مرام تر لاسه کولو له پاره سړی ور ولېږلی ځو د فرهنګي دفتر موظف شخص ځواب ورکړی ؤ چې داخو "زموږ د حزب اسرار دی چا ته ئې نشو ورکولای" (؟). له بلې خوا ګوندي تنګ نظری هم د دې باعث وې چې دځینې ګوند ونو خپرونې دې د هر چا لاس ته ونه رسېږي.

په دې بې نظمی او ګډوډۍ کښې هم زیاته اړه وه چې کتابونو ته او معرفي نامې ولیکلې شي خوله نېکه مرغه

چې د پېښور په پوهنتون اړیا سټډی سنټر ورته نشر کړاو
بیا یې له بشپړې زیاتونې سره د "آثار چاپي در معضلهٔ
افغانستان " په نوم په خپل لګښت خپور کړ چې د دري - دري
نیم سوو عنوانونو موقوت او غیر موقوت جهادي آثار پکښې
معرفي شوي وو. په همدې لاره کښې نور کامونه هم
واخیستل شول او نور کارونه هم وشول.
خو بیا هم دیوې منظمې معرفۍ، مشخصې معرفۍ
او ورپسې د اختصاصي او موضوعي معرفي ځای تش و او
زه په دې فکر کښې وم چې په دې لاره کښې کار وکړم
او د جهاد د سنګر خوارۀ وارۀ آثار سره راغونډ او معرفي
کړم، کار د روند وو خو زما علاقه جدي وه او په همدې
ترځ کښې د افغانستان د جهاد ثقافتي شورۍ په ۱۳۶۶
کال کښې د افغان جهاد مجله تاسیس کړه او زه چې د دې
مجلې د لیکوالې د لې غړی وم نو لومړی مې د هغو کتابونو د
معرفۍ له پاره یوه برخه پکښې پرانیسته چې نوی به خپرېدل
او زما لاس ته به رارسیدل او د دې ترڅنګ مې د جهادي

هم دوام لري .

[ ۵ ]

« دافغانستان داوسني ادبيات » د سيمينار علمي مجلس
پريکړه کړې وه چې د دې سيمينار په مناسبت دې دجهاد
يوادبي کتاببنود وليکل شي ، پرمايې غړي وکړه ، ماله يوې
خوا د ميني اوعلاقې له امله اوله بلې خوا دا چې کار مې په
جريان کښې ؤ دا امر وما نه اوله عمومي کارتهوتونه مې
د ادبي آثاروکارتهونه رابيل کړل . ما په اوله کښې -
غوښتل چې د دې کار له پاره يوازې هغه آثار رابيل کړم
چې معيار ولري او د « ادبي » نوم وړتيا واخيستلای شو خو له بده
مرغه له يوې خوا داسې آثار ډېرلږ وو او له بلې خوا زما
کار انتقادي نه ؤ چې د کره او ناکره جاج يې واخلم او د
رطب او يا بس بيلتون يې وکړم نو ځکه ما و پتيبله چې
په دې کتاببنود کښې ټول هغه آثار او هم چې د جهاد
په دوولس کلنه دوره کښې چاپ شوي او په يوه ول له

شته ، غیرجهادي ادبي آثار هم شته تذکرې، تبصرې
او د شهیدانو یا دوی هم شته او ما یه دې وسیله غوښتي
چې د دې دورې داد بیاتو د ځېرونکو له پاره هر څه
مخې ته کښېږدم څو دوی د خپلو څېړنو په وخت کښې
د وچو او لندو د معلوموولو له پاره پوره پیا نګه او ذخیره
ولري .

ما مخکښې عرض کړی و چې د جهاد په ساحه کښې اکثره
فرهنګي کارونه د غیرفرهنګي کسانو په لاس شوي ، په
همدې ډول ډېر ادبي کارونه د ؟ ، هم له ادب سره د نابلده
کسانو له خوا ترسره شوي او حتی همداسې کسانو شاعري
هم کړې ، کیسې یې هم لیکلي او داد ب دوی په نورو ځانګو
کښې هم ختلي خوکار او متاع یې د ادب رنګ ، بوی خوند
او مزه نه لري .

په هرحال زما کار لکه ومې چې ویل انتقادي نه
دی د موادو راغونډول دي نو ځکه په دې اثر کښې بي

دي او د سیمینار سکرتریت زمنه کړي چي د دي اثــر
دوهم ټوک به هم خپرو یا نوځکه هغه دوهم ټوک ته
پاتي شول او د اوس له پاره ستاسو لاسو نو ته لومړی
ټوک درسپېږي.

زه له دي یادونو او معذرتونو سره له تاسو اجازه
غواړم !

په درنښت

حبیب الله رفیع
آبدره رود ، پېښور
۱۳۶۹/۷/۲

[ ۱ ]

## د آزادۍ جذبه

مؤلف او شاعر: محمد ابراهیم تڼکو خاځی

خپرونکی: په خپله

د خپرېدو کال: ۱۳٦۷ - چونګابش

مخونه: ۱۹۰

کچه: ۱٤ × ۲۱ سم.

ځرګوالی: د شاعر د جهادي پارونکو او هڅونکو شعرونو مجموعه ده.

[ ۲ ]

## د آزادۍ مشال

شاعر: محمد هاشم زماني

د خپرېدو کال: ۱۳٦٤

کچه: ۱٤ × ۲۱ سم.

مخونه: ۱۸٤

[۳]

## آزردگی معاف

لیکوال : چوکیدار - د ده افغانانو له کوچې څخه .

خپرونکی ، د بصیرت مجلې اداره .

د چاپ نېټه : ۱ / ۱۱ / ۱۳۶۸

کچه ، ۱۶ X ۲۱ سم .

مخونه : ۱۵۵

څرنګوالی : د ادبي سکوندو نو (طنزونو) مجموعه ده چې د مهاجرت د ژوندانه او د ټولنیزو وندځینو اړخونو یې تر - اجتماعي نقد لاندې نیولي دي .

[۴]

## آموزګار نور و رهایی

خپرونکی : د افغانستان اسلامي حزب ، د شهادت جبهه

مرتب ، محمد طاهر محبوبیار

د چاپ کال ، ۱۳۶۶ - غویی .

کچه ، ۱۲ X ۱۸ سم

[ ۵ ]

## آنجاکه عاطفهٔ بشردوستی بر مهر مادری چیره میشود

مؤلف : س . ن . حسینی .

خپرونکی : دافغانستان دجهاد ثقافتي شورى .

دخپریدو نېټه : ۱۳٦۷ - لیندی

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه : ۳۱

څرنګوالی : دعبدالقادر نومی افغان مجاهد دتداوی کیسه ده چې په سلوکښې اتیا یې دبدن پوستکی دناپالم بم سوځولی ؤ او بیا یوه جرمنۍ مور حاضره شوه چې د خپل ځوان زوی پوستکی (چې په ترافیکی حادثه کښې مړ شوی ؤ) ورکړی او دا مجاهد ځوان د دې د زوی په پوست وپوښې .

[ ٦ ]

خپرونکی: افغان پریس انټرنیشنل، کوټه.

دخپریدو کال : ۱۳۶۴

کچه : ۲۱×۱۴ سم

مخونه : ۷۲

ځرګوالی : دشاعرهغه شعرونه او ویرنې دي چې دخپل مظلوم شهید زوی حمیدالله متین په یاد کښې یې ویلي او لیکلي دي.

[۷]

## ادبي اوښکې

لیکونکی: عبدالباري غیرت

خپرونکی: په خپله

دخپریدو کال: ۱۳۶۳- وری

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۲۶

ځرګوالی: په افغانستان کښې ...

[ ۸ ]

## اژدهای خودی

(۴ ټوک)

### سرمنزل آزادی

لیکوال : پوهاند ډاکټر سید بهاءالدین مجروح

خپرونکی : دافغانستان دمجاهدو لیکوالو ټولنه .

دچاپ کال : (۱۳٦۸) - ( دوهم چاپ) .

کچه : ۲۱×۱۴ سم .

شمېر : ۳۰۰

څرنګوالی : په ادبي ژبه د ټولنيزې روانشناسی ژوړ بحث دی چې د دې اثر تېره سلسله تعقيبوي او په دې څلورم ټوک کښې دنيمې شپې لاروی دخپلواکۍ دمنزل په لټه کښې دی .

[ ۹ ]

## افغانستان آزادیږي

لیکونکی : انقلاب (عبدالباري غیرت) .

مخونه : ۳۱

څرنګوالی : دشاعردلومړنیوجهادي شعرونونوي ګوچنۍ مجموعه ده .

[ ۱۰ ]

## دافغانستان پرخلکو دروس د نوکرانو حکومت دحقیقتونو په رڼا کښې

لیکونکی : همت .

دخپرېدو وخت : ۱۳۵۸ - غویی .

کچه : ۱۲×۱۸ سم .

مخونه : ۸۴

څرنګوالی : دتره کي دحکومت په څېره خبري کوي او دلیکوال دنیول کېدو یادداشتونه اوخاطري دي .

[ ۱۱ ]

## دافغانستان داسلامي ملي انقلاب

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۱۷٦

څرنګوالی: دکتاب لومړۍ برخه دلیکوال دوینا له مخې اشعار او دوهمه برخه یې دجهاد ځینې پیښې او وقایع دي چې دلیدونکوله خولې لیکل شوي دي.

[ ۱۲ ]

# افغانستان در آتش

ژباړن: ځګتورن سید محمد مصطفی.

خپرونکی: دافغان جهاد دآثارو دژباړې کانون.

دچاپ نېټه: ۱۳٦۷- وری.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۱۵۴

څرنګوالی: د روسیې د فراري عسکرو مرکې: لومړۍ برخه د شوروي عسکر کیسه کوي، دوهمه برخه د نړیوالو مؤسسو د اکتران شهادت ورکوي، دریمه برخه جنګ دافغانانو له

## [ ۱۳ ]

## په افغانستان کښې د وینو سیلاب

لیکونکی : عبدالمحمد مموزی .

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه : ۸۴

څرنګوالی : د دوبندي، لوګر، ازري، حصارک، وردګو، نرخ، میدان، جلریز، د هزارجات د بهسودو او څاځیو جګړې څیړي. رساله د سفرنامې په بڼه کښل شوې ده .

## [ ۱۴ ]

## د الفت خبرې

وینا وال : اروابناد استاد ګل پاچا الفت .

خپرونکی : ډاکټر عبدالرحمن الفت .

د خپرېدو کال : ۱۳۶۷ - زمری .

کچه : ۱۴×۲۱ سم

مخونه : ۱۶۹

[۱۵]

## امروز زدایی برای فردا

د: ن، لاجورد ینشهری.

خپروونکی: دافغانستان اسلامي جمعیت.

دچاپ کال: ۱۳٦٦ - مرغومی.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۲۹

ځرګوالی: د سبا په باب فلسفي او ادبي بحث دی، په دې برخه کښې یې د حافظ او اقبال نظر څرګند کړی او وایي چې مون باید سبا ته خوشبین ولوسو او د سبا د روښانتیا به په تکل کښې وو.

[۱٦]

## انجام

ویناوال: حبیب الله رفیع.

خپروونکی: (دامان کتاب خپرولو مؤسسه).

څرنګوالی : د شاعر د جهادي غزلو مجموعه ده .

[۱۷]

## اندیښني

لیکوونکی : سید محمد شفیع ( سپاهی ګمنام ) .

د خپریدو کال : ۱۳٦۷ هـ ش .

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه : ۵۹

څرنګوالی : د ښاغلی لیکوال د پښتو او دري نثر او نظم مجموعه ده چې جهادي مطالب پکښې را نغښتل شوي دي .

[۱۸]

## انصار شاعران

لیکوونکی : عبدالباري غیرت .

د چاپ کال : ۱۳٦۵

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه : ۳۴

[ ۱۹ ]

## دانقلاب غوغا

لیکونکی: دیدار احمدزی.

دخپریدو کال، ۱۳۶۷ - لیندی

کچه: ۱۲ x ۱۸ سم.

مخونه: ۱۰۳

څرنګوالی: دشاعر دیني، جهادي او دمهاجرت دمحیط انځوروونکي شعرونه دي.

[ ۲۰ ]

## د اور باران

شاعر: امان الله نصرت

دچاپ کال: ۱۳۶۶

کچه: ۱۲ x ۱۸ سم

مخونه: ۸۶

څرنګوالی: د شاعر دجهادي شعرونو مجموعه ده چې د

[ ۲۱ ]

## د اور ترانې د ژوند شعرونه

مؤلف: الحاج ننګیال.

خپروونکی: فرهنګ جهاد

دخپرېدو کال: ۱۹۸۹ - فبروري.

کچه: ۱۴×۲۱ سم.

مخونه: ۲۶۰

څرنګوالی: دصوبه سرحد او بلوچستان دهغو شاعرانو شعرونه پکښې راغونډ شوي چې دافغانستان دجهاد په اړه او دافغان مسلمان ملت په ملاتړ کښې يې ويلي، په همدې اړه يوه تحليلي سريزه هم لري.

[۲۲]

## اورونه او ويرونه

وياوال: حبيب الله رفيع.

خپروونکی: دامان کتاب خپرولو مؤسسه.

دچاپ کال: ۱۳۶۳

ځرګوالی : د شاعر د جهادي وینا آزاد نظمونه، نظمونه غزلې، قصیدې او قطعې پکښې راغلي دي او د غوایه د کودتا په اړه یوه مشاهده د سرېزې په توګه ورسره مله شوې ده .

[۲۳]

## باروت خبرې کوي

لیکوال: ح . وحدت وردګ .

خپرونکی : د افغانستان غږ راډیو د اطلاعاتو اداره .

د چاپ نېټه : ۱۳٦۸ ـ دلو .

کچه : ۱۸×۱۲ سم .

مخونه : ۱۳۳

ځرګوالی : مجاهدینو ته د تسلیم شویو لوړه تبه خلقیانو او پرچمیانو اظهارات ، اعترافات او انکشافات دي چې په خوبنه ادبي ډول راغونډ شوي دي .

[۲۴]

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۷۵

څرنګوالی: دا انصار شاعر هغه شعرونه دي چې د افغانستان د جهاد، انقلاب او هجرت په اړه یې ویلي او د هغو شهیدانو په نوم یې اهدا کړي چې د اسلام د دین یې په خپله وینه روښانه کړی ده.

[۲۵]

## بانګ رحیل

ویناوال: سید اسحق دلجو حسینی.

خپرونکی: د شفق مجلې اداره، د افغانستان اسلامي حزب.

د خپرېدو کال: ۱۳٦۷ - چنګابن.

کچه: ۱۴ × ۲۱ سم.

مخونه: ۲۰۷

څرنګوالی: د شاعر د جهادي او تر جهاد وړاندې شعرونو مجموعه ده.

[۲٦]

خپروونکی: د دعوت او ارشاد وزارت، د مطبوعاتو -
عمومي رياست.

د چاپ کال: ۱۳۶۹ - دوري اول.

کچه: ۲۱×۱٤ سم.

مخونه: ۵۹

څرګوالی: د هغې مشاعرې د پښتو او دري اشعار و مجموعه ده چې د جهادي نندارتون په ترڅ کښې د پېښور په نشتر هال کښې جوړه شوې وه.

[۲۷]

## بمونه او غمونه

ونياوال: څېړنمل محمد عارف غروال.

خپروونکی: د افغانستان ملي اسلامي محاذ.

د خپرېدو کال: ۱۳۶۷

کچه: ۲۱×۱۴ سم.

مخونه: ۱۱۲

څرګوالی: د شاعر د جهادي

## [۲۸]

# بهار خون نشستګان

ویناوال: استاد خلیل الله خلیلي .

خپرونکی: دکابل ولایت د جند الله قرارګاه .

دچاپ کال: ۱۳٦۷

کچه: ۱۲×۱۸ سم .

مخونه: ۱٦

څرګوالی: دافغانستان د مهاجرینو دعلمي مرکز له خوا د استاد خلیلي یوشمیر جهادي شعرونه پکښې انتخاب شوي دي .

## [۲۹]

# بهارته

ویناوال: م ، پسرلی .

دخپریدو کال: ۱۳٦۴ - پسرلی

کچه: ۱۲×۱۸ سم .

مخونه: ٦

[۳۰]

## بهار مدینه

مصنف: قاري غلام حضرت خطیب.

مقدمه او اهتمام: نثار احمد نوري.

خپرونکی: د تاج محل نشراتي مؤسسه.

د چاپ کال: ۱۳۶۸ - ورې.

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۱۰۸

څرګندوالی: د مرحوم قاري غلام حضرت د نعتیه شعرونو مجموعه.

[۳۱]

## بې سرنوشتان

د: جمال احمد لیکنه.

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۹۳

څرګندوالی: د کابل په زندان کښې دیوه بندي خاطرې

## [۳۲]

# د پلوشو ډالۍ

وياوال: عيسى محمد عصمت قانع .

دچاپ کال: ۱۳٦۳

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه: ۱۱٦

ځرګوالی: د شاعر د جهادي شعرونو مجموعه او د تودو احساساتو ادبي انځور دی.

## [۳۳]

# پيغام

وياوال: فضل الرحمن محسن .

دخپرېدو کال: ۱۹۹۰

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه: ۱۹۱

ځرګوالی: د سره شکېلاک د ناکردو او ناوړو ديوانځور
دی چې يادرده انصلان شاعر دخپل ضمير له تل نه خپل ولس ته

[۳۴]

## پیغام

ویناوال: محمد موسی شفیق.

سریزه: الحاج ننګیال.

خپرونکی: فرهنګ جهاد

نیټه: ۱۳۶۷ - غویی




کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۸۳

څرګوالی: د شاعر پېژوند او فن څېړنه ده او د ده د "پیغام" د شعرونو چې په ۱۳۳۷ کال په کابل کښې خپور شوی و، یو انتخابي برخه پکښې راغلې ده.

[۳۵]

## تالنده او برېښنا

ویناوال: لطیف جان بابی.

د چاپ کال: ۱۳۶۵

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

[۳۶]

## تحقیق

### نمایشنامهٔ اسلامي

لیکوال: محمد توفیق برکات.

ژباړن: ف. فاضل.

خپرونکی: دافغانستان دمجاهدینو اسلامي اتحاد فرهنګي کمیټه.

دخپرېدو کال: ۱۴۰۵ هـ ق.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۱۱۰

څرنګوالی: دځوځوانانو مسلمانانو دتحقیق جریان ښيي چې د سوریې داخوان المسلمین یوه غړې لیکلی او نن هم د موجوده جهاد له پيښو سره ډېره ورته والی لري.

[۳۷]

## تصویر

ویناوال: حبیب الله رفیع

مخونه: ۳۰

ځرنګوالی: دشاعر دجهادي قطعو مجموعه ده.

[۳۸]

# تلپاتې يادونه

ويناوال: توريالی حاځی.

اهتمام: فرهنګ جهاد.

دخپريدو نېټه: ۱۳۶۹-جوزا

کچه: ۱۲ X ۸ سم.

مخونه: ۱۱۲

ځرنګوالی: دجهاد هغه روايات، حکايات او خاطرې دي چې ليکوال ته رسيدلی او ده داد بې نثر يا نظم په جامه پسولي دي.

[۳۹]

# تنوير الاذهان

ليکوال: ميا ګل صاحبزاده.

خپرونکی: په خپله.

دخپريدو کال: (۱۳۶۸).

څرګندوالی: د شاعر جهادي او اعتقادي پښتو او دري شعرونه دي.

[٤٠]

## تودي او سړکي
## د
## مولینا محمد اکبر خادم په مزار

ویناوال: م. پسرلی.

دچاپ کال: ١٣٦٣

کچه: ١٢ × ١٨ سم.

مخونه: ١٥

څرګندوالی: د صوبه سرحد د نامتو مبارز شاعر محمد اکبر خادم په یادګښې د نثر او نظم مجموعه ده.

[٤١]

## تورزن تورن افغان

مؤلف: محمد عارف غروال.

خپروونکی: د افغانستان ملی اسلامي محاذ.

مخونه: ۵۲

څرنګوالی: د شهید تورن افغان ژوندلیک او د ده په یاد شعرونه او ویرنې پکښې راغلي دي.

[٤٢]

## توره شپه
## او سره وحشیان

خپرونکی: د افغانستان اسلامي حزب، فرهنګي کمیټه.

کچه: ۲۴×۱۵ سم.

مخونه: ۳۳ پاڼې

څرنګوالی: پر افغانستان باندې د سره کارد د وحشیانه تیری د او وکلو پوره کېدو په مناسبت. په پښتو او دري ژبو کښې ل شوي مطالب او تصویرونه د وانه لري.

[٤٣]

## تیاري لاري رڼې کړئ

لیکوال: الحاج ننګیال.

مخونه: ۱۲۶

څرنګوالی: د لیکوال د جهادي داستانونو او کیسو مجموعه ده چې د جهاد د بیلا بیلو برخو پیښې او وقایع پکښې هنري او ادبي کړې دي.

[٤٤]

## جام نیاز

ویناوال: استاد خلیلي.

تهیه او ترتیب: سید حامد محمود علمي.

د چاپ کال: ۱٤۰۷ هـ ق

کچه: ۲۱×۱٤ سم.

مخونه: ۱۹

څرنګوالی: د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په ویاړ ندي منظومه شرا او د ملت د حال انځور.

[٤٥]

## جګړه

ویناوال: لطیف جان بابی

مخونه: ۱۳۳

څرنګوالی: د شاعر د هغو پاکو احساساتو هینداره ده چې د خپل مقدس جهاد او ګران هیواد څېره پکښې وینو.

[٤٦]

# جهاد او مجاهد

(لومړی ټوک)

لیکونکی: مولوي ولاجان وثیق

د خپرېدو نېټه: ۱۳۵۹/۹/۲۹

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم

مخونه: ۷۲

څرنګوالی: د جهاد او مجاهد په باب یوه لیکنه ده چې ځای پرځای د مؤلف شعرونه هم پکښې راغلي دي.

[٤٧]

# جهاد او مجاهد

(دوهم ټوک)

ځرګوالی: دجهاد او مجاهد په باب د مؤلف منظوم او منثور بر داشتونه پکښې راغلي دي.

[٤٨]

## دجهاد جذبه

### دغمګین د اشعارو دیوان

ویونکی: غمګین

خپروونکی: د افغانستان اسلامي جمعیت د فرهنګي کمیټې د تألیف او ترجمې ریاست .

د خپرېدو نېټه: ١٣٦٦ - وږی

کچه: ١٨X٢٤ سم.

مخونه: ٢٢٤

ځرګوالی: دغمګین دجهادي شعرونو مجموعه ده چې یوه برخه يې د الفبا په اساس ردیف شوې او پاتې يې بې ترتیبه دي.

[٤٩]

## دجهاد جذبه

کچه: ۱۲×۱۸ سم.

مخونه: ٤۱

څرنګوالی: د مجاهد شاعر جهادي او اسلامي شعرونو مجموعه ده.

[۵۰]

## دجهاد ملغلري

د: مولوي شاه ولي مظلوم.

د: ضياء المدارس سوغات.

دچاپ کال: ۱۳٦۵

کچه: ۱۲×۱۸ سم.

مخونه: ۱۳۳

څرنګوالی: دشاعر ديني، جهادي او دحرکت انقلاب اسلامي پهستاينه کښې ويل شوي شعرونه دي.

[۵۱]

## دچشتي مخمسات

مخونه: ۳۶۵

څرنګوالی: د بناغلي چشتي جهادي، تصوفي او عشقي مخمسونه دي چې زیات یې د خوشال خان خټک، رحمان بابا او استاد حمزه په غزلو جوړ کړي او په وروستي برخه کښې یې دري مخمسونه راغلي دي.

[۵۲]

## چند قطرهٔ اشک

بیاد مرحوم استاد خلیلي

شاعر: محمد حنیف حنیف بلخي.

کچه: ۱۲ x ۱۸ سم.

مخونه ۹۹

څرنګوالی: د ارواښاد استاد خلیلي ژوندلیک او هنر ته یو نظر او د ده په یاد او ویر کښې څلور قصیدې.

[۵۳]

## ځاله او تویان

مخونه : ۱۴۸

څرنګوالی: دلیکوال د نهو جهادي افسانو مجموعه ده چې زیاتری یې د هیواد د ننه د دردوونکې او ځوروونکې پیښې انځوروي او له واقعیت نه رنګ اخلي .

[۵۴]

## دځناوروفارم

یا

### د روسي کمونیزم هینداره

لیکوال: جارج ارول .

مترجم: ع ، رسول امین .

خپروونکی : دافغانستان دلیکوالو اتحادیه .

کال : نه لیکي .

کچه : ۱۸×۱۲ سم.

مخونه : ۱۸۳

[۵۵]

## دځیگرونې

مؤلف: محمد ایوب غزگیوال.

دچیریدو کال: ۱۳۶۷

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۲۲۰

څرنګوالی: د شاعر داولسي، عشقي او اجتماعي شعرونو مجموعه ده.

[۵٦]

## څوب

ویناوال: سمون (حبیب الله رفیع)

خپرونکی: د امان کتاب خپرولو مؤسسه.

دچاپ کال: ۱۳۵۸

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۳۰

څرنګوالی: د شاعر د جهادي شعرونو لومړنۍ مجموعه ده.

سریزه : د حبیب الله رفیع .

ترتیب : د محمد روحاني .

خپرونکی: دامان کتاب خپرولو مؤسسه .

دخپرېدو کال: ۱۳٦٤/ ۱۹۸۵

څرنګوالی: د شاعر د پخو جهادي غزلو او قصیدو مجموعه ده .

[۵۸]

## حکایات انتباهی
## لقمان حکیم

ژباړن: ډاکټر حفیظ الله سحر.

خپرونکی: کابل کتابفروشي .

دچاپ نېټه : ۱۳٦۸- وږی ( دوهم چاپ ) .

کچه : ۱۲×۱۸ سم .

مخونه: ۱۸٤

[۵۹]

## حماسهٔ جهاد

شاعر: حامد نوید .

خپرونکی: د آزاد افغانستان د لیکوالو اتحادیه، وفا.

د چاپ کال: ۱۹۸۹ - دسمبر .

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۱۹

څرنګوالی: د مثنوی په کالب کښې یې د جهاد پیښې او کیسې رانغښتې او ژوندۍ کړې دي .

[۶۰]

## خاطرات پریشان

ویناوال : دکتور عبدالحکیم طبیبي .

خپرونکی : نه لري .

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه: ۷٤

ښيي .

[ ٦١ ]

## دا خو بل من زړه پيغـــام

شاعر: ملا محمد حنيفي .

خپرونکی: مکتبهٔ علمیه .

دخپرېدو کال: ١٣٦٥

کچه: ١٥×٢٠ سم .

مخونه: ٤٣٢

ځانګړې: په مقام او سر وتال برابر ويل شوی جهادي،
عشقي او ديني شعرونه دي .

[ ٦٢ ]

## داستانهایی
## از جهاد

نویسنده: شعیب مجددی .

دخپرېدو کال: ١٣٦٦-غويي

کچه: ١٢×١٨ سم .

مجموعه ده .

[ ٦٣ ]

## داسې هم وو

ليکوال : محمد صديق پسرلى .

خپروونکې : د سپېدې اداره .

د چاپ کال : ۱۳٦٤

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه : ۱۵۵

څرګوالى : د ليکوال د ۱۳ جهادي افسانو مجموعه ده چې د هنر په خوږه ژبه د روسانو او د دوى د مزدورانو د ناوړه او وحشيانه کړو وړو بېلابېل اړخونه بيانوي .

[ ٦٤ ]

## داهغه بالاحصار دى . . .

ويناوال : فضل ولي ناګار .

خپروونکې : د افغانستان اسلامي حزب ، دارشاد او فرهنګ کمېټه .

د خپرېدو کال : ۱۳٦٧

څرنګوالی: د شاعر د جهادي، اعتقادي او اجتماعي شعرونو مجموعه ده چې د غزلو، نظمونو او څلوريزو په ويش او ډل - شوې ده.

[٦٥]

# درد دل

د: عبدالباری غیرت.

دچاپ کال: ١٣٦٦

کچه: ١٢ × ١٨ سم.

مخونه: ٢٧

څرنګوالی: د شاعر د ری... جهادي شعرونو مجموعه

ده.

[٦٦]

# د سپين غرانګازې

شاعر: سيد نعيم شاه مجاهد.

دخپريدو کال: ١٣٦٥، کب

کچه: ٢١×١٤ سم.

شعرونه دي .

[٦٧]

## دل نالان

د: صوفي عشقري .

په اهتمام د: نثاراحمد نوري .

خپروونکی : قاري عاصمي او تاج محل کمپني .

دخپرېدو کال : ١٣٦٦- چنګاښ ( دوهم چاپ ،

کچه : ١٢ × ١٨ سم .

مخونه : ١٤١

څرنګوالی : دا رواښاد صوفي عشقري د حمدیه ، نعتیه او منقبتیه شعرونو مجموعه ده .

[٦٨]

## دوبیتی های هجرت

د: عنایت شریف .

دچاپ کال : ١٣٦١

کچه : ١٢ × ١٨ سم .

یوه مهاجر شاعر د زړه فریاد دی .

[۶۹]

# دوچهره

## نمایشنامهٔ تاریخی

لیکوال: دکتور یوسف قرضاوي .

ژباړن: ف . فاصل .

د چاپ کال: ۱/ ۵/ ۱۴۰۵ هـ ق .

کچه: ۱۲x۱۸ سم .

مخونه: ۸۲

څرنګوالی: د بني امیه په دوره پورې تړلې د حجاج د -
واکمنۍ د وخت په اړه تاریخي ډرامه ده چې د نوموړي واکمن
له ظلم او وحشت نه پرده پورته کوي .

[۷۰]

# دوې مشاعرې

ټولوونکی: ننګیال

څرګوالی: په دې اثر کښې د «ملنه وښیوه» او «خبرې نه کوې» په ردیفونو د جهاد د ادبي سنګر د شاعرانو له خوا شوې مشاعرې راغونډې شوې دي.

[ ۷۱ ]

## دیوان عشقري

(لومړی ټوک)

ویناوال: صوفي عشقري.
سریزه: نثاراحمد نوري
خپرونکی: تاج محل کمپنی - پېښور.
دخپرېدو کال: ۱۳۶۷ - وری.
کچه: ۱۴ × ۲۱ سم.
مخونه: ۲۱۱

څرګوالی: د رواني پیړۍ د دري دخوږژبي شاعر روانباد صوفي عشقري د غزلو مردف دیوان دی چې د میني نغمې او د تصوف چاشني لري.

[ ۷۲ ]

مقدمه، تصحیح او اهتمام د : نثار احمد نوري .

خپرونکی: محمد وسیم د تاج محل کمپنی مالک .

د چاپ کال: ۱۳۶۸ - لمړ

کچه : ۱۸×۱۲ سم .

مخونه: ۱۳۲

څرنګوالی: د حضرت غوث الثقلین مناجاتیه شعرونه دي چې په ضمیمه کښې يې سوانح او کرامات هم راغلي او مرتب غوث الثقلین صاحب ته د دې شعرونو په نسبت کښې شک نه لري .

[۷۳]

## دیوان مظهر

شاعر: جان جانان .

سریزه: نثار احمد نوري .

خپرونکی: تاج محل کمپني .

د خپرېدو کال: (۱۳۶۷) .

شعرونو مجموعه ده .

[۷۴]

## رښتیانې کیسې

لیکوال: استاد مرتضی مطهري .

ژباړن: محمد آصف صمیم .

خپرونکی: په خپله .

دخپرېدو کال : ۱۳۶۳

کچه : ۲۱×۱۴ سم .

مخونه: ۷۸

څرګندوالی : په دې اثرکښې دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم دژوند څو رښتینې کیسې چې پند او عبرت او درس لري، راغونډې شوې دي .

[۷۵]

## زمه

لیکوال : ډاکتر عمادالدین خلیل .

مخونه : ۲٤

څرنګوالی : دکمونستي کوند دغړو دیوې غونډې پوښتنو ځوابونه

انځوروي او د دوی طرز تفکر او برداشت رابرسیره کوي .

[۷٦]

## رنځري څریکي

ویناوال : لطیف جان بابي .

خپروونکی : دامان کتاب خپرولو مؤسسه .

دخپریدو کال : ۱۳٦۸ هـ ش/۱۹۹۰م

کچه : ۱۸×۱۲ سم .

مخونه : ۱٦۸

څرنګوالی : د شاعر جهادي شعرونو شپږمه مجموعه

ده چې د هیواد داورونو، ویرونو او دردونو کیسې کوي .

[۷۷]

## روسي ښامار

د : محمد هاشم زماني اثر .

دچاپ کال : ۱۳٦۰

چې د هزاره جات، نورستان او د جهاد د نورو سیمو جهادي غورځنګونه یې پکښې اغځور کړي دي.

[۷۸]

## روسي ښامار.

د: نورالله لیکنه.

د چاپ کال: ۱۳۶۰ - سلواغه.

کچه: ۱۰ × ۱۶½ سم.

مخونه: ۳۲

ځانګوالی: د شاعر د جهادي شعرونو مجموعه ده.

[۷۹]

## زبان مردم
## اشعار رزمي

ویناوال: محمد اکبر شیدایي افغان.

خپروونکی: تاج محل کمپني.

د خپریدو کال: ۱۳۶۵ - غبرګولی.

[۸۰]

## د زړه آواز

وياوال : عبدالله غمخور .

خپرونکی: په خپله .

دخپريدوکال: ۱۳۶۲ - غويي .

کچه : ۱۴×۲۱ سم .

مخونه : ۱۳۶

ځرګوالی : دشاعردجهادي شعرونولومړنۍ مجموعه ده ،
چې ملي دردونه او جهادي غورځنګونه پکښې انځورشوي دي .

[۸۱]

## زمزم اشک

وياوال : استاد خليلی

خپرونکی : دمولوی خالص اسلامي حزب .

دخپريدوکال: ۱۳۶۱ - ليندۍ .

کچه : ۱۴×۲۱ سم .

[۸۲]

## دزماني سيلى

ليکوال: عبدالباري غيرت .

خپرونکى: دافغانستان داسلامي جهادمؤسسه .

دچاپ کال: ۱۳٦۸

کچه: ۱۲×۱۸ سم .

مخونه: ۲۸۸

څرنګوالى: دشاعردلس کلنو جهادي اشعارومجموعه ، د دې کتاب لومړى برخه دښکلي اشعارو په نوم څو کاله وړاندې خپره شوې وه .

[۸۳]

## زماوير

ويناوال: ستاريار

خپرونکى: په خپله

دخپريدوکال: ۱۳٦۸

کچه: ۱۲×۱۸ سم

تنقیدي شعرونو مجموعه ده .

[۸٤]

# زندان

ویناوال: حبیب الله رفیع .

خپروونکی: (دامان کتاب خپرولو مؤسسه) .

دچاپ کال: (۱۳٦۳) .

کچه: ۱۲ X ۱۸ سم.

مخونه: ۳٤

څرنګوالی: دشاعرد آزادو جهادي شعرونو یوه کوچنۍ مجموعه ده .

[۸۵]

# زور حمام

لیکونکی: محمد حسن ولسمل .

خپروونکی: دافغان مجاهد اطلاعاتي مرکز.

دخپریدو کال: ۱۳٦٤

کچه: ۱۲ X ۱۸ سم .

او مهاجرت د محیط په اړه سیاسي نتیجه ګیري ترې شوې ده.

[۸۶]

## زهره

ویناوال: محمد صدیق پسرلی.

خپرونکی: د افغانستان کلتوري ټولنه.

دخپرېدو کال: ۱۳۶۹ هـ ش/۱۴۱۱ هـ ق/ ۱۹۹۰ ع.

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۵۹

څرنګوالی: د خانانو او اربابانو د ناخوالو یوه زړه تراژیدي ده چې دخوږه شعر په غیږه کښې رانغښتله شوې ده.

[۸۷]

## ږلۍ او کوڅۍ

ویناوال: حبیب الله رفیع.

خپرونکی: امان کتاب.

دخپرېدو کال: ۱۳۶۷

کچه: ۱۴×۲۱ سم.

مجموعه ده .

[ ۸۸ ]

## ساربان نور

ویناوال: عبدالحی شیدا .

خپرونکی: دافغانستان اسلامي حزب، دارشاد او فرهنګ کمسیون.

دچاپ نیټه: ۱۳٦٦ - ورکال.

کچه: ۲۱x۱٤ سم .

مخونه: ۲۲۲

ځرګوال: د شاعر د جهادي شعرونو يو غوره چاپ دی او ځرګندې چې شاعر د بدخشان د ولايت د جهادي جبهو امیرونو څخه یې شعرونه په تاوده سنګرکښې رامنځ ته شوي دي.

[ ۸۹ ]

## د/ سبا ستوري

ویونکی : غلام حضرت سیمسار.

ټولوونکی: غلام حمید رسیمسار .

خپرونکی: غلام ...

مخونه: ۱۳۰

څرنګوالی: د شاعر د عشقي او جهادي شعرونو مجموعه ده.

[ ۹۰ ]

## د سباغازي

ليکوال: ولي محمد ولي.

د چاپېدو کال: ۱۹۹۰ / ۱۳۶۹

کچه: ۱۵ x ۲٤ سم.

مخونه: ۱۳۰

څرنګوالی: د ليکوال د ۲٤ داستانونو مجموعه ده چې يو برخه يې نثريوال، بله برخه يې هيوادي او بله برخه يې سيمه ايز مطالب لري.

[ ۹۱ ]

## سپينې خبرې

د: تهذيبوال ليکنه.

د چاپېدو کال: ۱۳۶۶ - سلواغه.

مخونه: ۵۸

شاعر احساسات او برداشت لري.

[۹۲]

## د سره سنګر قیصې

مؤلف: محمد ابراهیم تکړ خاځی.

خپرونکی: په خپله.

د خپرېدو کال: ۱۳۶۷ - تله

کچه: ۱۲×۱۸ سم.

مخونه: ۱۰۳

څرنګوالی: د جهاد د بېلابېلو اړخونو ښېښي دي چې د کیسو په بڼه یې لیکلي د مجاهدینو د شهامت، شجاعت او شهادت او د روسانو د وحشت، بربریت او قساوت حکایتونه لري.

[۹۳]

## سره غالۍ

لیکوال: محمد صدیق پسرلی.

مخونه : ۱۲۷

څرنګوالی : دلیکوال د ۱٤ لنډو داستانونو مجموعه ده چې جهادي او اجتماعي مطالب لري .

[۹٤]

## د سنګر سندره

اثر د : ګل زرک ځدراڼ .

خپروونکی : په ځپیله .

د خپرېدو کال : (۱۳٦۸) .

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم .

مخونه : ۱٥٤

څرنګوالی : د شاعر د جهادي پښتو او یو شمېر دري شعرونو او دردونو مجموعه ده .

[۹٥]

## سنګرنامه

شاعر : نثار احمد نوري .

خپروونکی : تاج محل کمپنی .

مخونه: ۹۵

څرګوالی: د شاعر په اولسي طرز ویل شوې چاربیتې او جهادي شعرونه پکښې راغونډ شوي دي.

[۹۶]

## سوزن زر وجامهٔ سفید

ویناوال: استاد خلیلي.

څېړونکی: عبدالغفار ګداز.

د چاپ کال: ۱۹۸۴

کچه: ۱۳ × ۲۲ سم.

مخونه: ۸

څرګوالی: د هرات پرویراني او جنګونو د قلم اوښکې دي چې د خواږه نثر او شعر په بڼه څخول شوې دي.

[۹۷]

## سونګا او رڼکیت

ویناوال: لطیف جان بابي.

مخونه: ۱۰۹

څرنګوالی: د شاعر د جهادي او هیوادي شعرونو مجموعه ده.

[۹۸]

## سپیڅلی

لیکوال: ډاکتر محمد اکبر اکبر.

خپرونکی: په خپله.

د خپریدو کال: ۱۳۶۸

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۱۰۶

څرنګوالی: د لیکوال د اتو جهادي افسانو مجموعه ده چې په سریزه کښې یې په پښتو ادب کښې د افسانې د ریځ څیړل شوي دي.

[۹۹]

## شب های آوارگی

د: استاد خلیل الله خلیلی.

مخونه: ٤١١

څرنګوالی: داستاد خلیلي یوه پخه مثنوي ده چې د هجرت په شپو ورځو کښې په اخلاقي، انتباهي او اعتقادي کیسې پکښې اغږور کړې دي.

[١٠٠]

## شګوفه ها

ویناوال: استاد شفق.

خپرونکی: دافغانستان د نصر سازمان، پېښور.

کچه: ١٢x ١٨ سم.

مخونه: ٧٣

څرنګوالی: د شاعر دعشقي، وطني او جهادي شعرونو مجموعه ده.

[١٠١]

## دشمال له خوا شمال دی

ویناوال: حبیب الله رفیع.

خپرونکی: (دامان کتاب خپرولو مؤسسه).

مخونه: ۳۲

څرنګوالی: د شاعر د جهادي نظمونو مجموعه ده.

[۱۰۲]

## شهید مولوي قدیر محمد ګربز او د جهاد قرباني

لیکونکی: ګل زرک ځدران.

خپرونکی: په خپله.

د خپرېدو کال: ۱۳۶۰-غویی.

کچه: ۱۲ X ۱۸ سم.

مخونه: ۱۲۶

څرنګوالی: د شهید قدیر محمد ګربز د ژوند، جهاد او کارنامو په باب لیکل شوی کتاب دی چې په پای کښې د ده د پښتو شعر نمونې هم لري.

[۱۰۳]

## شیران طرابلس

مخونه: ۸٤

څرنګوالی : داستاني اثر دی چې دا یټالوي ښکېلاک په وړاندې د یخوانۍ طرابلس (اوس لیبیا) دخلکو مبارزه انځوروي.

[۱۰٤]

## نبکلی اشعار

ونیاوال : عبدالباري غیرت.

دچاپ کال: ۱۳٦۳ - تله.

کچه، ۱۲×۱۸ سم.

مخونه: ۱۹٦

څرنګوالی : د شاعر د جهادي شعرونو مجموعه ده چې د خوناب، انقلاب، نوی شعر، کمونستي اصطلاحات په څلورو برخو کښې ترتیب شوې ده.

[۱۰۵]

## عشقي، ملي، صوفیانه اشعار

تصنیف : غلام الله ایمان صافي.

دخپرېدو کال: ۱۳۵۹/۱۲/۲۱

ځرنګوالی : یوه مجموعه ده چې مصنف یې خپل ملي، عشقي او صوفیانه شعرونه بولي .

[۱۰۶]

## دغیرت توره

ویناوال : امان الله نصرت .

دچاپ نیټه : ۱۳۵۹ - مرغومی .

کچه : ۱۸×۱۲ سم.

مخونه : ۷٤

ځرنګوالی : دځوان شاعر دجهادي شعرونو لومړنۍ مجموعه ده.

[۱۰۷]

## فریاد به بارگاه پیغمبر (ص)

ویناوال : استاد خلیلي .

دخپریدو کال او ځای : ۱۳٦٤ـ نیوجرسي ، امریکا .

کچه : ۲۱×۱٤ سم .

مخونه : ۱۵

ځرنګوالی : دحضرت رسول صلی الله

[۱۰۸]

## فشردهٔ از تجاوزات اجانب در افغانستان

مبارزات آزادیخواهی وملی مردم افغانستان

لیکوال: عبدالرحیم جلالي.

دچاپ کال: ۱۳۶۳

کچه: ۱۸x۲٤ سم.

مخونه: ۹۵

څرنګوالی: دجهاد پېښې او حماسې یې په نظم پکښې لیکلې دي.

[۱۰۹]

## قطبي خرس

د: محمد هاشم زماني اثر

دخپرېدو کال: ۱۹۸۰ - دسمبر

کچه: ۱۸x۱۲ سم.

[ ۱۱۰ ]

## قلم درخدمت جهاد

(نگاهی به اشعار استاد خلیلي)

لیکوال: دکتورس عفاف السید زیدان .

ژباړن: دکتور نصري .

دچاپ کال: ۱٤۰٤ هـ ق/ ۱۹۸٤م .

کچه: ۱٤×۲۱ سم.

مخونه: ۱۸

ځرګوالی: د استاد خلیلي پرجهادي شعرونویوه ځېړنه ده.

[ ۱۱۱ ]

## قهرمان شهید ذبیح الله

تحریر او ترتیب: محمد اسماعیل لبیب .

خپروونکی: مولوی باز محمد عزیزی .

دخپریدو کال: ۱۳٦٥ - لږم .

ژوندلیک، په دوهمه برخه کښې د هغه مرثیې او د هغه په باب نظریې راغونډه شوې دي.

[۱۱۲]

## کاروان اشک

د: استاد خلیل الله خلیلي.

خپرونکی: "د افغانستان یوه مهاجراو د سپیڅلی عقیدې خاوند

مېرمن.

د خپرېدو کال: ۱۳٦۲-لیندۍ.

کچه: ۲۱×۱٤ سم

مخونه: ۱۲

څرنګوالی: د استاد خلیلي یوه قصیده او یو مخمس دی

چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په حضور یې د

افغانستان د اتل ملت مظلومیت د شعر په ژبه بیان

کړی دی.

[۱۱۳]

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۱۱۶

څرنګوالی: د شاعر د جهادي او هیوادي شعرونو مجموعه ده چې د ځپل اولس په شهامت ویاړي او د روسي وحشت غندنه کوي.

[۱۱٤]

## کمونستي اصطلاحات

ویناوال: عبدالباري غیرت.

دچاپ کال: ۱۳٦٤

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۳۲

څرنګوالی: د شاعر د قطعو مجموعه ده چې په ځینو کښې یې ځینې کمونستي اصطلاحات په ادبي طنز انځور شوي دي.

[۱۱۵]

## ګل او بلبل

کچه : ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه : ۱۱۸

ځرنګوالی : د شاعر د عشقي، ملي او جهادي شعرونو مجموعه ده.

[۱۱٦]

## ګلبانګ بلال

شاعر: خواجه امین الله خراساني.

خپروونکی : په خپله

د خپرېدو کال: ۱۳٦٤ - غويي

کچه: ۱٤ × ۲۱ سم.

مخونه : ٥٤

ځرنګوالی : د شاعر جهادي شعرونه، د مظلوم ملت فریاد او د بری او سوبې د داد زېری دي.

[۱۱۷]

## ګلبانګ رهایی

کچه : ۱۴×۲۱ سم.

مخونه : ۱۹۰

څرنګوالی : د شاعر د جهادي شعرونو انتخابي مجموعه ده.

[۱۱۸]

## ګلبرګهای دانش

راټولوونکی : عبداللطیف رهایی.

د چاپ کال : ۱۳۶۷ - غبرګولی.

د چاپ ځای : د افغانستان د اسلامي جمعیت د فرهنګي کمیټې مطبعه.

کچه : ۱۲×۱۸ سم.

مخونه : ۲۲

څرنګوالی : په دې اثر کښې د علم او ادب د لویانو ورې لنډې او معنی دارې خبرې راغونډې شوې دي.

[۱۱۹]

## ګلهای خزان

کچه: ۱۵×۲٤ سم.

مخونه: ۳٦٥

څرنګوالی: د شاعر د عمومي شاعرۍ مجموعه ده چې د غزلو، قصیدو او نورو برخې لري.

[۱۲۰]

## ګوابش

ویناوال: م، مزمل.

کچه: ۱٤×۲۱ سم.

مخونه: ٤۳

څرنګوالی: د شاعر جهادي، اعتقادي او اجتماعي شعرونو مجموعه ده.

[۱۲۱]

## لټون

شاعر: شیرشاه علي لونګین.

د چاپ نېټه: ۱۳۵۸/۷/۷

کچه: ۱۲×۱۸ [illegible]

مجموعه ده.

[۱۲۲]

## لویه هنګامه

ویناوال: عبدالله غمخور.

خپرونکی: پېښله.

دخپرېدو کال: ۱۹۸۹

کچه: ۱۳×۲۱ سم.

مخونه: ۳۲۴

څرنګوالی: د شاعر دجهادي او اجتماعي شعرونو مجموعه ده چې له بشپړېدو وروسته یې لومړی ځل له پاره خپره شوې ده.

[۱۲۳]

## لیونی باد

لیکوال: م، پاسنی (محمدصدیق پسرلی).

دچاپ نېټه: ۱۳۶۰ - دتلې ۳۰

کچه: ۱۲×۱۸ سم.

نتیجه کیږي لري.

## [۱۲۴]

# ماتمسرا

(لومړی برخه)

ویناوال: استاد خلیلي.

دچاپ نېټه: ۱۳۶۰ - نوروز - امریکا.

کچه: ۱۴×۲۱ سم.

مخونه: ۴۸

څرګوالی: د استاد خلیلي د جهادي شعرونو لومړنۍ مجموعه ده.

## [۱۲۵]

# ماتمسرا

(دوهمه برخه)

ویناوال: استاد خلیلي.

دچاپ کال او ځای: ۱۳۶۰ - مرغومی، امریکا، نیوجرسي.

کچه: ۱۸×۲۴

دا اثر بیا وروسته په یوه جلد کښې د افغانستان د مجاهدو لیکوالو د ټولنې او کابل کتابفروشۍ له خوا د دوهم او دریم ځل له پاره هم خپور شوی دی.

[۱۲۶]

## مادر از خون فرزند میگذرد

لیکوال: استاد خلیلي.

خپرونکی: دافغانستان د حرکت انقلاب اسلامي فرهنګي کمیټه.

د چاپ کال: ۱۳٦۵

کچه: ۱٤×۲۱ سم.

مخونه: ۱۵ پاڼې.

څرنګوالی: یوه تاریخي کیسه ده چې مور د خپل زوی له قصاص نه تیریږي او قاتل د دې له پاره بخښي چې له انګریزانو سره جهاد وکړي او دی بیا په جهاد کښې شهادت مومي.

[۱۲۷]

## مبارز شهید

دچاپ نیټه: ۱۳۶۲ - دکب ۳

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۱۵۱

څرنګوالی: د شهید عزیز الفت په یاد لیکل شوی کتاب دی چې د بیلابیلو لیکوالو مقالې، لیکونه، مرثیې او د ده خپلې مقالې دي.

[۱۲۸]

## مجموعهٔ اشعار استاد خلیلی

خپرونکی: خاور کتاب پلورنځی.

دچاپ کال: ۱۳۶۹ (دوهم چاپ)

کچه: ۲۳×۱۷ سم.

مخونه: ۲۶۰

څرنګوالی: د استاد خلیلي د اشعارو مجموعه ده چې څوالومړی ځل په ایران کښې په ۱۳۵۳ کال خپره شوې وه.

[۱۲۹]

خپرونکی: دافغانستان دجهادي خپرنو مرکز.

دخپریدو کال: ۱۳۶۸

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۹۸

ځرنګوالی: دیوه اتل او مبارز غازي او شهید ملا محمود صوفي زاده یادلیک دی چې د ده جهادي یادداشتونه او شعرونه هم پکښې خوندی شوي دي.

[۱۳۰]

## مراندې

ویناوال: ډاکتر محمد اکبر اکبر.

خپرونکی: په خپله.

دخپریدو کال: ۱۳۶۸

کچه: ۲۱×۱۳ سم.

مخونه: ۳۸ سریزې + ۲۰۸ متن.

## [۱۳۱]
# د مرګ په شیبو کښې

لیکونکی: ع، ل.

د خپرېدو کال: ۱۳۵۹

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۱۳۳

څرنګوالی: د وینې څښونکو روسانو د جاني پلویانو ناوړو دودې څېړې او د زندان د حالاتو انځورونه لري.

## [۱۳۲]
# مړي اوښکې

وینا وال: م، پسرلی.

خپرونکی: په خپله.

د خپرېدو نېټه: ۵/۱/۱۳۶۴

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۶۱

[۱۳۳]

## مزلونه او منزلونه

وياوال: الحاج ننګيال.

خپرونکی: دافغانستان اسلامي جمعيت، فرهنګي کميټه.

دخپريدو کال: ۱۳٦۷ - کب.

کچه: ۱۲ x ۱۸ سم.

مخونه: ۸۰

ځرګوالی: دشاعر د وروستيو کلونو د جهادي شعرونو مجموعه ده چې دجهاد ادبي اړخونه يې کړي ده.

[۱۳٤]

## دمسلمان افغان فرياد

ليکونکی: انقلاب (عبدالباري غيرت).

خپرونکی: په خپله.

دخپريدو کال: ۱۳۵۹ - غبرګولی.

کچه: ۱۲ x ۱۸ سم.

[۱۳۵]

## د مسلمان افغان پاڅون

### د ملالۍ او ګل جان داستان

لیکوال: دوهم برید من کوچي غزنیوال .

د چاپ کال: نه لري.

کچه: ۱۴×۲۱ سم.

مخونه: ٦١

څرنګوالی: په نظم او نثر دیوه مجاهد ورور او خور د جهاد او مبارزې داستان دی.

[۱۳٦]

## مشعل ایمان

لیکوال: خواجه عبدالحق بهسودي .

څیړونکی: مولوی محمد اسرارالله همیمي .

کچه: ۱۴×۲۲ سم.

مخونه: ٦٢

څرنګوالی: د ایمان او دایمان د څواک په باب یو ترکیب-

[۱۳۷]

# ملغلرې

مؤلف: س، ح، کمال شینواری .

خپروونکی : دافغانستان ملي اسلامي محاذ .

دچاپ نېټه : ۱۳٦۸/٤/٤

کچه : ۲۱x۱۸ سم .

ټوک: ۳۹۸

څرګندوالی: په دې اثرکښې د پیغمبرانو، اسلامي پوهانو، صوفیانو، عارفانو، حکماؤ اولویانو وینا ته وې ، لنډې کیسې اوخوږې خبرې راغونډې شوې دي .

[۱۲۸]

# به مناسبت وفات استاد خلیل الله خلیلي

مرتب اوخپروونکي : دآزادافغانستان دلیکوالو ټولنه، وفا.

دچاپ کال : ۱۳٦٦ـ غویی/ ۱۹۸۷ می .

او ده دشعرونو انتخاب پکښې راغلي دي .

## [۱۳۹]

# مهاجر

شاعر : سید محمد عمر شهید .

خپرونکی : دافغانستان دجهاد ثقافتي شورى .

دخپریدو کال : ۱۳٦۷ - تله .

کچه : ۱۸×۱۲ سم .

مخونه : ۳۷

ځرنګوالی : دجهاد په اړه او د مجاهدینو په اړه دشاعر ځــو
شعرونه دي .

## [۱٤۰]

# مینه او مناجات

ویونکی : غلام حضرت سیمسار .

ټولوونکی : غلام حیدر سیمسار .

دخپریدو نېټه : ۱۳٦۳ - تله .

کچه : ۱۸×۱۲ سم .

[١٤١]

## ميهن من

د : استاد پژواک .

خپرونکی: دامان کتاب خپرولو مؤسسه .

دخپريدو کال: ١٣٦٨ ش/ ١٩٨٩ ع .

کچه : ١٤x٢١ سم .

مخونه: ٦٤

څرنګوالی: دشاعر دجهادي ، فلسفي او اجتماعي پښتو او دري شعرونو مجموعه ده .

[١٤٢]

## ناآشنا سندري

د : ډاکتر سيد بهاء الدين مجروح .

خپرونکی : دافغانستان دجاهدو ليکوالو ټولنه .

دخپريدو کال: ١٣٦٨ - ١٩٨٩

کچه : ١٤x٢١ سم .

شاعرانو د ده په یاد کښې ویلي دي.

[۱٤۳]

## ندای یک زندانی رها شده از همیهنان شما

لیکوال: عبدالغني حکیمي، د بغلان ولایت د خوست او فرنګ اولسوالی او سېدونکی.

خپروونکی: د افغانستان د اسلامي جمعیت د فرهنګي کمېټې طبع.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۲٤

څرګوالی: د خپل نیول کېدو، تحقیق او د زندان د شکنجو خاطرې پکښې لیکي.

[۱٤٤]

## نگاهی بزندان پلچرخي

مؤلف: ن. حسیني هریپور.

د چاپ نېټه: ۱۹۸۹ - د جنوري لومړی.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

کال په یوه جګړه کښې نیول شوی او زندان ته بیول شوی دی.

[۱۴۵]

## نن، پرون، سبا

ویاوال: م، پسرلی.

خپروونکی: د سپیدی مجله.

دخپریدو کال: ۱۳۶۴ - دغویي لومړۍ.

کچه: ۱۴×۲۱ سم.

مخونه: ۱۳

څرګوالی: دیوې قصیدې په ترڅ کښې په افغانستان کښې دکمونیزم د وحشت نادودې او دافغانستان داتل ملت قیام انځور شوي دي.

[۱۴۶]

## نیزار

د: محمد حنیف حنیف.

دچاپ کال: ۱۳۶۵

[۱٤٧]

## وجدان وهي په بدله

تولوونکی: محمد حسن ولسمل.

خپروونکی: دافغان مجاهد اطلاعاتي مرکز.

دخپریدو کال: ۱۳٦٤ هـ ش/ ۱۹۸٦ م.

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۳۲

څرنګوالی: یوه انتقادي مشاعره ده چې دجهاد دچاپیر په ستونځو غبرېږي او د رهبرانو او رهروانو کمزوري ګوته نیسي.

[۱٤٨]

## ورکه مینه

ویناوال: عبد الباري جهاني.

دخپریدو کال: ۱۳٦۷-ژمی.

کچه: ۱۲ × ۱۸ سم.

مخونه: ۱۸۵

[۱٤۹]

## د وطن او قام درد

ویونکی: مطیع الله احمدزی- مشهور په متین .

خپرونکی: تاج محل کمپنی .

کچه: ۱۲×۱۸ سم .

مخونه: ۲۰۲

څرنګوالی: د شاعر د اخلاقي، ملي، اجتماعي او جهادي شعرونو مجموعه ده .

[۱۵۰]

## د وطن ویر

ویونکی: م - پاسنی (محمد صدیق پسرلی) .

د خپرېدو کال: (۱۹۸۱) .

کچه: ۱۲×۱۸ سم .

مخونه: ۱۰۲

څرنګوالی: د شاعر د جهادي، انتقادي او انقلابي شعرونو

[۱۵۱]

## د وطن یاد

ویناواله: نجیبه وجدي وردګ.

دخپریدو کال: ۱۳۶۲

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۳۰

څرنګوالی: د وطن په یاد کښې د یوې پر دیسې او دردیدلی شاعرې شعري قطعې او پارچې دي.

[۱۵۲]

## د وینو بهیر

ویناوال: حبیب الله رفیع.

خپروونکی: ,رامان کتاب خپرولو مؤسسه).

د چاپ کال: (۱۳۶۳).

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۲۶

[۱۵۳]

## د وینو پیغام

ویناوال: محمد نهیر شفیقي.

خپرونکی: د افغانستان حزب اسلامي، د ارشاد او فرهنګ کمسیون، د نشراتو آمریت، د شفق مجلې مدیریت.

د چاپ کال: ۱۳۶۵ - غبرګولی.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

مخونه: ۱۱۲

ځرګوالی: د شاعر د جهادي شعرونو مجموعه ده چې د جهاد او هجرت په بېلا بېلو ګوښو رڼا اچوي.

[۱۵۴]

## په وینو سور کمیس

لیکونکی: عابد.

د چاپ کال: ۱۳۵۸ - کب.

کچه: ۱۸×۱۲ سم.

[۱۵۵]

## د وینو فواري

د: څېړنمل محمد عارف غروال .

دچاپ کال، ۱۳۶۲

کچه: ۱۸×۱۲ سم .

مخونه: ۱۰۸

څرنګوالی: د شاعر د جهادي شعرونو لومړنۍ مجموعه ده چې د جهاد او هجرت په بېلا بېلو ګوښو رڼا اچوي.

[۱۵۶]

## د وینو مشالونه

وینا وال: تورپالی ځاځی .

خپرونکی: فرهنګ جهاد .

د خپرېدو کال: ۱۳۶۷

کچه: ۱۸×۱۲ سم .

مخونه: ۵۹

څرنګوالی: د شاعر د جهادي شعرونو ...

[۱۵۷]

## وینه په قلم کښې

لیکوال: الحاج ننګیال .

خپروونکی: دافغانستان دجهادي خپرنو مرکز .

دخپرېدو کال: ۱۳٦۸ - لیندۍ .

کچه: ۱٤x۲۱ سم .

مخونه: ۸۱۰ + ۱۹ عکسونه

ځرګوالی: دجهاد د فرهنګي سنګرد ۷۵ تنو شاعرانو، لیکوالو او محققینو مشرحه تذکره ده چې د دوی ژوند لیک، پر شړ وند تبصره او ددوی د نظم او نثر نمونې پکښې را نغښتل شوي دي .

[۱۵۸]

## وني بهیږي سپرلی به راشي

ویناوال: دصوبه سرحد پنځوس تنه شاعران .

ټولوونکی: حیران ختهک .

مخونه: ۱۶۰

ځرګوالی: د پنځوس تنو انصارو شاعرانو وینا ده چې د - افغانستان د ملت د جهاد، هجرت، سرښندنو، مظلومیت او په عین حال کښې شهامت ځیره انځوروي.

[۱۵۹]

## هجرونه او زجرونه

ویونکی: عبدالمتین تسکین.

خپروونکی: په خپله.

دخپریدو کال: ۱۳۶۷

کچه: ۲۱X۱۸ سم.

مخونه: ۱۲۸

ځرګوالی: د شاعر د هجرت او جهاد شعرونه چې د وطن په مینه کښې یې ویلي دي.

[۱۶۰]

## هدیهٔ نوروز

راغونډوونکی: شهرت ننګیال.

کچه: ۱۴×۲۱ سم

مخونه: ۹۴

څرنګوالی: د پښتو او دري شعرونو مجموعه ده چې
د افغانستان په وینو لړلې پسرلي پکښې انځور شوی او
د سورګلونو شهیدانو یاد پکښې نغښتی دی.

[۱۶۱]

# به یاد سخن آفرین
# و سخنور سترګ استاد خلیلی

ټولوونکی: ننګیال.

خپروونکی: فرهنګ جهاد.

د چاپ کال: ۱۳۶۶ - چنګابښ.

کچه: ½۱۱ × ½۱۷ سم.

مخونه: ۱۲۵

څرنګوالی: د استاد خلیلي په یاد کښې د لیکل شوو پښتو
او دري مرثیو او مقالــــــــــــــو مجموعه ده.

خپروونکی: دافغانستان د مجاهد و لیکوالو ټولنه.

دچاپ کال: ۱۹۸۵

کچه: ۱٤x۲۲ سم.

مخونه: ۱۱۳

څرنګوالی: د بناغلی مجروح د پښتو او دري شعرونو مجموعه ده چې د جهاد د دورې پر شعرونو سربېره د «منتخب شعرونه» اشعار هم پکښې راغلي دي.

[۱٦۳]

## یادګار

وېناوال: لطیف جان بابی.

دخپرېدو کال: ۱۳٦۷

کچه: ۱۲x۱۸ سم.

مخونه: ۱٤۸

څرنګوالی: د شاعر هغه ساندې او وېرنې دي چې د خپل ځوانیمرګ ورور عبدالهادي بابي په یادګښې یې ویلي دي.

[۱٦٤]

کچه: ۱۲×۱۸ سم.

مخونه: ۳۰

څرنګوالی: د شهید ذبیح الله ژوند لیک او د ده مرثیه پکښې راغلي دي.

## [۱۶۵]

# یادواره شهید عالیقدر سید قاسم

لیکونکی: کې کسان.

خپرونکی: په تهران کښې د افغانستان د اسلامي جمعیت فرهنګي مرکز.

دخپریدو کال: ۱۳۶۶

کچه: ۱۲×۱۸ سم.

مخونه: ۵۵

څرنګوالی: د نوموړی شهید ژوند لیک، د ده مرثیې او یادونې پکښې راغلي دي.

دخپرېدوکال : (۱۳۵۹) .

کچه : ۹ × ۱۲ سم .

مخونه : ۱۱

څرنګوالی : د ۱۳۵۸ کال دکب د درېمې نېټې د زړوړپاڅون یوه لنډه نقشه راکاږي او په پای کښې یو دخلاصون مناجات لري .

## [۱٦۷]
## یار آشنا

ویناوال : استاد خلیلي .

خپرونکی : دافغانستان داسلامی جمعیت علمي او مشورتي انجمن .

دچاپ کال : ۱۹۸۲ م .

کچه : ۱۸ × ۲٤ سم .

مخونه : ۸۰

څرنګوالی : د علامه اقبال په یاد او دده دهنر په باب د نثر او شعر مجموعه .

[۱٦۸]

# د یوبې ګلونه

مؤلف: محمد یعقوب شرافت.

خپرونکی: دافغانستان اسلامي حزب (دخالص مشري)، فرهنګي ریاست.

دخپریدو کال: ۱۳٦۸ - ورې.

کچه: ۱۳×۲۰ سم.

مخونه: ٤۳

څرنګوالی: دیو شمیر شهیدانو سوانح، د دوی په یاد ویل شوي شعرونه او د دوی عکسونه پکښې خوندي دي.

# دلیکوالو نوملیک

(شمیره د کتاب د نومړي په مخ دی)